تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة
# في
# حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابوالعزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغہ تقبلہ اللہ

تحریر و ترتیب

سید محمد ثواب
ابن سید آکاخیل باباصاحب

دوسرا حصہ

ناشر

مدرسہ حدیقۃ الاحناف

# مسئلة الأمين بالجهر :

## التحقيق في الامين بالجهر :

اعوذ بالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم ﴿ ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ ﴾ ( الأعراف آيت : ۵۵)

بله مسئله چې زير بحث يې گرځوو هغه تحقيق دي په امين بالجهر کې مسئله د امين بالجهر چې شوافع او حنابله پرې قائل دي خو امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ د خفيه د بهترې قائل دي او هغوي د جهر د بهترې قائل دي دا هم داسې مسئله ده چې د جانبينو په مينځ کې نزاع په جواز او عدم جواز کې نه ده که چا امين بالجهر ته مکروه ويلي دي حمليږي به په کراهت تنزيهي باندې لا ينبغي خلاف اولى خبره ده .

کومو مسائلو کې چې مذهبونه راشي دا ټول په حقه باندې وي ځوک چې هر يو پسې ځي تللې شي دا چې مونږ دې زمن کې جُهال اهل حديثو ته څه غضب او غصه کوو هغه دا دې وجې نه ، نه چې تا رفع اليدين او امين بالجهر ولې کړې د هغې لويه وجه دا ده چې هغوي دا دومره بې اعتماده دې زماني په شيخ الحديثانو دې مشائخو علماء باندې ولې دومره بې اعتماده دي چې هغوي سره د علم نه جهر نه کوي په امين باندې او دوي په دوه ټکي علم باندې مذهب پريښودو .

نو دا مسئله بيننا وبين الشوافع والحنابلة نزاعي ده زمونږ او د اهل حديثو مينځ کې نه ده دوي دې خبرې ته ذير شورش ورکړې دي .

نو تاسو ورته شورش مه ورکوي بيا هم که دا ځوک وايي چې امين بالخفيه سره څونځ خرابيږي .

نو داسې خو يو وهابي هم نشته چې داسې ويلي وي خو بيا هم که کوم جاهل داسې خبره کوي د هغوي د دفاع لپاره مونږ دا مسئله زير بحث کړه .

اولاً خپل دلائل دې کې راغونډومه او په آخره کې د خصم دلائل او د هغې نه څه جوابات يا چې په هغې کوم ايرادات دي هغه ذکر کومه :

امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ د جهر د تامين امام او ماموم لره قائل دي دا يې رايه ده فلهذا په دې ترجمه لړولې ده په جلد ۱ صفحه ۱۹۸ کې باب لړوي : باب ما جاء في التأمين بالجهر ، خو په دغه دعوی باندې ده سره دغه ځای کې هيڅ دليل نشته دي زمونږ شيخ د بخاري چې به دغه ځای ته راغلو وبه يې خندل وايي نن امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ باندې څه چل شوې دي باب يې د خپل مذهب لړولې دي دلائل يې د احنافو شروع کړې دي ځکه ده چې کله دا باب لړولې دي نو اول دليل دا وايي چې :

قال عطاء آمين الدعاء . حضرت عطاء وايي چې امين دعاء ده .

نو دا يو دليل شو د امام بخاري لخوا په امين بالجهر باندې نو چې دې کې لږ سوچ وشي چې دا دليل د ده شو او که د احنافو شو چې هر کله آمين دعاء ده نو :

﴿ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً﴾ خو پټ يې وايه نو په جهر يې څنګه وايي دا خو د جهر دليل نه دي کنه د هغې نه بعد يې د عبد الله بن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تعليقي روايت بدون د سند نه ذکر کړې دي وهابيان دې مونږ ته ځکه نه پيش کوي چې دوي خو بې سنده خبره نه مني په دغه ځای کې د امام بخاري او د عبد الله بن زبير په وسط کې سند نشته دي په بخاري کې نشته دي او دوي کې خو بعضې داسې محبين د بخاري شته چې د بخاري نه غير د بل چا روايت قبلوي هم نه کوم روايت کې چې ان للمسجد للجة راځي چې ابن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ امامت کوه حرم شريف کې هلته به آمين وويلې شو مسجد کې به زنګاوه لاړه نو دا تعليقي روايت دي دغلته بدون د سند نه په بخاري کې ذکر دي د هغې نه بعد يې بيا هغه حديث ذکر کړې دي :

، اذا قال الامام غير المغضوب عليهم ولا الضالين فقولوا آمين .

دا حديث امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ پيش کړې دي نو که دې حديث ته وکتل شي دا خو زمونږ د احنافو دليل شو کنه ده د دليل خو نه شي کيدې کله چې ووايي امام ولا الضالين نو تاسو وايي آمين نو تعليق د قرآءت د آمين د مقتديانو يې معلق کړو تر ولا الضالين د امام پورې نو که امام جهر په آمين کولې خو داسې ويل په کار وو :

اذا قال الامام ولا الضالين آمين فقولوا آمين .

کله چې امام آمین ووايي تاسو آمین ووايي دا يې نه ده پيش کړې دا يې پيش کړې چې کله امام ولا الضالين ووايي نو تاسو آمين ووايي نو معلوميږي چې امام به آمين په جهر نه وايي که جهر په آمين باندې وايي نو تعليق د آمين د مقتديانو تر آمين د امام پورې په کار وه تر ولا الضالين د امام نه وه په کار.

دا رايه د امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ ده خو شواهد نه لري ، که څوک وايي چې حديث د وائل ابن حجر چې ترمذي ذکر کړې دي هغه حديث دده په نزد مضطرب وه په دغه لحاظ دده په اصولو برابر نه وه نو نه مسلم را واخيسته او نه بخاري را واخيسته په دغه مثابت هغه صحيح نه وه او کومو ځايونو کې چې د امام بخاري رايه وي شواهد نه لري نو دوي وايي چې د بخاري قول مونږ نه شو منلې بيا يې مونږ ته ولې پيش کوي .

کتاب الادب کې امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ باب لړوي : باب الأخذ باليدين ، سترې مشي په دواړو لاسونو باندې مستحب ده آدب دادی چې سترې مه شي په دواړو لاسونو کوه ، حديث په کې د عبدالله ابن مسعود د تعليم د تشهد پيش کوي وايي دا حديث يې په دعوى دليل نه دي مونږ يې نه شو منلې اگر که ترجمه يې لړولې ده زمونږ دا عامو طالبانو کې هم دا يو نظر جوړ شوې دي چې امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ باب ولړوي د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ رايه د هغې خلاف وي نو دوي سره ډير غم پيدا شي چې اوس د بخاري نه به مونږ څه جواب کوو نو د امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ نه څه جواب کوي .

امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ يو مقلد انسان وه او امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ مجتهد انسان وه امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ ته جواب پيدا کړه چې ولې ده د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ خلاف کړې دي ، امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ ته اوس ته دلائل گوري چې دده خلاف يې ولې کړې دي هغه مجتهد دي څلور امامان مجتهدين دي او دا مقلدين دي محدثين دي خو فقهاء خو نه دي په هغه مثابت کې کنه .

اوس چې امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ باب ولړوه اوس تا سره غم پيدا شو چې هله امام صاحب د امام بخاري خلاف کړې جواب ورته پيدا کړي هيڅ جواب ورته مه گوره ده ته جواب پيدا کړه چې د ولې ديو فقيه خلاف کړې دي نو دا وهم له ذهن نه اوباسي .

امام بخاري امام مسلم امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ دوي نه دعوى د اجتهاد کړي او نه مجتهدين دي دا څه حنابله دي څه شوافع دي او کم په کې موالک دي شوافع په کې ډير زيات دي په دې محدثينو کې نو دا ټول مذهبونو کې داخل دي خو محدثين دي حافظين د احاديثو دي فقاهت ددوي د ائمه وو مقابله نه شي کولې .

د هر فن د پاره خپل خلک دي خپل رجال دي يو سړي په ټولو کارونو کې مه مخکې کوي بس حفظ الحديث په فن د آحاديثو کې امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ له يو شان دي په فقه کې بيا نه شي کولې مقابله د هغوي نو ترجمه امام بخاري لړولې ده خو ترجمه باندې شواهد نه لري نو ګويا کې داد امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ خپل محضي قول د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ خلاف راغې نو اوس دده قول چې د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ خلاف راشي نو قول څه الزامي حجت دي په امامنا باندې .

نو مونږ وايو چې امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ ليکلي چې حضرت عطاء فرمايي چې آمين دعاء ده که يو څوک وايي چې زه د عطاء قول نه منم چې آمين دعاء ده ځکه دوي خو ډير بې آدبه دي نو د هغه لپاره د سورة يونس ۸۸ او ۸۹ نمبر ايتونه دې پيش کړې شي :

﴿ وَقَالَ مُوسَىٰ رَبَّنَا إِنَّكَ آتَيْتَ فِرْعَوْنَ وَمَلَأَهُ زِينَةً وَأَمْوَالًا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا رَبَّنَا لِيُضِلُّوا عَن سَبِيلِكَ رَبَّنَا اطْمِسْ عَلَىٰ أَمْوَالِهِمْ وَاشْدُدْ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوا حَتَّىٰ يَرَوُا الْعَذَابَ الْأَلِيمَ ﴾ ۸۸.

قال موسى ربنا داد دعاء ده رب کريم ورته فرمايي :

﴿ قَالَ قَدْ أُجِيبَت دَّعْوَتُكُمَا ﴾ قبوله کړې شوه دعاء ستاسې دواړو اي هارون عليک السلام اي موسى عليک السلام هغه مخکې آيت کې راځي ، قال موسى دعا موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ کړې ده جواب کې راځي دعوتکما ستاسې د دواړو دعا قبوله کړې شوه نو دواړو خو دعاء نه وه کړې دعا خو يواځې موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ کړې وه جواب څه دي رحمت عالم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي :

کان موسى يدعوا وهارون يؤمنوا ، هارون عَلَيْهِ السَّلَامُ آمين ويلې او موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ دعاء کوله امين دعا شوه که دعاء نه وايي دعوتکما ورته ولې وايي نو دا ايات کريمه دليل دې

دي چې آمين دعاء ده نص قرآني نه ثابته ده او حديث د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه ثابته ده چې آمين دعاء ده او د آمين معنى هم ده : استجب لنا اسم فعل دي په معنى د استجب لنا زمونږ دعاء قبوله کړه .

هر کله چې آمين دعاء شوه هغه ايات ورته مخاطب شو ورته :

﴿ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ﴾ ( الاعراف آيت : ٥٥)

د لا يحب المعتدين ځو معاني دي يو رد دي په جهرِ بليغ باندې چغي وهل په دعاء کې خداى تعالى دې ته تجاوز في الدعاء وايي او دا نه خوښوي صحابه وو چغې نه دي وهلې کومو روایاتو کې چې رفع راغلې ده هغه احاديث شته دي .

هغه راوي وايي چې زه پسې شاته ولاړ ومه ما واوريده او دوي خو ترې نه سم درز پورته کړي نو دا جهرِ بليغ دي دا هغه د نبي عَلَيْهِ السَّلَام رفعې نه دا رفعه ثابتول دا خو هيڅ موافقت نه لري هغه راوي وايي چې زه شاته ولاړ وم ما واوريدلو يلي په صف اول کې يو کس اوريدلې دي دومره رفع شوې ده جواب د هغې ييا هم را روان دي او دوي څه قسم رفع کوي او څه رقم ته چغه وهي نو دا جهرِ بليغ دي او دعاء ده او په دعاء کې دومره جهر لکه وهاييان يې چې کوي يقينا دا اعتدى في الدعاء ده انه لا يحب المعتدين .

دليل د احنافو د پاره په خفيه آمين باندې مسند احمد بن حنبل جلد ۴ صفحه ۳۱٦ کې دا حديث ذکر کړې دي :

**حدثنا عبد الله حدثني ابي حدثنا محمد بن جعفر حدثنا شعبة عن سلمة بن سهيل عن حجر ابي العنبس قال سمعت علقمة يحدث عن وائل او سمعه حجر من وائل .**

دې عبارت ته تاسو ګوري ما د مسند احمد حديث ځکه راواخيسته د ترمذي حديث مې را وانه خيسته هغلته د امام بخاري څه اعتراضات امام ترمذي نقل کړې دا مې تاسو ته عبارت کې وليکه چې تاسو ته د هغه اعتراض خود بخود دفعه شي .

**قال سمعت علقمة يحدث عن وائل** . حجر څه وايي ما د علقمه نه واوريدل چې هغه د وائل بن حجر نه ما ته حديث بيانه وه .

او سمعه حجر من وائل . او حجر دا خپل هم اوریدلي د وائل ابن حجر نه دلته د امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ یو اعتراض دفعه کیږي یا اشاره ورته کومه :

قال صلی بنا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فلما قرأ غیر المغضوب علیهم ولا الضالین قال آمین و اخفی بها صوته .

او ټیټ یې کړو په دې باندې آواز خپل .

ووضع یده الیمنی علی یده الیسری وسلم عن یمینه وعن یساره .

همدغه حدیث سنن الدار قطني را اخیستې دي جلد ۳ صفحه ۴۰۶ ، المعجم الکبیر للطبراني را اخیستې جلد ۵ صفحه ۴۲۰.

صحیح ابن حبان جلد ۵ صفحه ۱۰۹ د الباني شاګرد شعیب الارناؤوط په دغه ځای باندې ابن حبان کې تعلیق کوي وایي :

اسناد قوي . سند د حدیث قوي دي .

رجاله رجال الصحیح . رجال د سند یې رجال د بخاري دي .

غیر حجر ابي العنبس واسم ابیه العنبس واثقه ابن معین . چې هغه یې توثیق بیان کړې دي .

وذکره المؤلف في الثقات . ابن حبان یادوي .

واخرجه الطیالسي . په مسند خپل کې په ۱۰۳۴ رقم باندې :

ومن طریقه البیهقي في السنن جلد ۲ صفحه ۵۷، واخرجه احمد جلد ۴ صفحه ۳۱۶، عن محمد بن جعفر والطبراني په کبیر کې جلد ۲۲ صفحه ۱۱۲، من طریق وکیع ثلاثتهم عن شعبة .

دا درې واړه د شعبه نه روایت کوي :

بهذا الاسناد وفیها قال حجر وقد سمعته من وائل . ما د وائل نه په خپله هم اوریدلې دي یعني داد علقمه عن وائل او ما په خپله هم د وائل نه اوریدلې دي .

قال آمين واخفى بها صوته . واخرجه الطبراني جلد ۲۲ صفحه ۱۰۹ من طريق ابي الوليد او په صفحه ۱۱۰ کې من طريق حجاج بن نصير كلاهما عن شعبة عن سلمة عن حجر عن وائل وفيه ايضاً زيادة واخفى بهما صوته . همدغه حديث الحاكم ذكر كړي جلد ۲ صفحه ۲۳۲، وصححه على شرط الشيخين . ووافقه الذهبي . په تلخيص کې امام ذهبي موافقت كوي رد نه كوي چې صحيح نه دي .

قال الدار قطني في سننه جلد ۱ صفحه ۳۳۴ كذا قال شعبة واخفى بها صوته .

څو مره حوالې د كتبو الحديث چې ذكر شوې دي ټولو دا حديث د شعبة په روايت سره ذكر كړې دي اوس د شعبه څو مره شاګردان دي په سند د مسند احمد کې محمد ابن جعفر راغې .

په سند د طبراني کې وكيع راغې او په سند د طبراني د معجم الكبير کې ابي الوليد راغې او په دويم سند کې حجاج بن نصير راغې نو حجاج بن نصير او ابو الوليد او وكيع او محمد ابن جعفر دا څلور واړه روايت كوي د شعبة عن سلمة ابن كهيل عن حجر ابي العنبس قال سمعت علقمة يحدث .

په هغې کې دادي :

واخفى بها صوته .

## الايرادات :

مخالفين او خصم په دې څه اعتراضونه پيش كوي :

امام ترمذي په دغه ځای کې دري (۳) اعتراضه نقل كړې دي په نقل د امام بخاري سره چې د هغه قول يې نقل كړې دي، ۲ جلد صفحه ۲۷ بيروت چاپ :

قال ابو عيسى الترمذي وسمعت محمداً يقول حديث سفيان اصح من حديث شعبة .

چې امام بخاري دي .

يقول حديث سفيان اصح من حديث شعبة .

همدا حديث دي د سلمة بن كهيل شاگردان شعبة دي او بل شاگرد يې سفيان دي شعبة د سلمه نه عن حجر عن علقمة عن وائل حديث د اخفى بها صوته نقلوي او سفيان عن سلمة عن حجر عن وائل د مدا بها صوته حديث نقلوي چې آواز يې پرې رابنكلو نو وايي ما د امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ نه واوريدل چې حديث د سفيان اصح دي د حديث د شعبة نه.

في هذا . په دغه باب کې .

په دې به ځان پوهـ کړي چې دې دې ته اصح من حديث شعبة وايي خو بيا يې هم په هغه مثابت يې صحيح نه گڼي چې دې يې په خپل کتاب کې را واخلي هغه مرتبه کې صحيح يې نه گڼي چې د کتاب د راخيستو قابل وگرځي ده چې کوم شرائط ويلې دي د بخاري په سند ونو کې نو په هغه انداز باندې حديث د امين بالجهر هم صحيح نه دي چې خپل کتاب کې ځکه باب يې را واخيسته او حديث نشته او حديث ورته بنه معلوم هم دي چې حديث د سفيان حديث د شعبة نه اصح دي اصح دي من شعبة او اصح دي في هذا الباب داد امام ترمذي طريقه ده هذا اصح شيء في هذا الباب ددې دا معنى نه شوه چې دا داسې صحيح دي چې مقابله يې نه شي کيدلې نه دې باب کې ټول کمزوري روايات دي نو نسبتاً دا په کې اصح دي .

دا معنى اوس امام بخاري اعتراض کوي چونکې رايه يې د امين بالجهر ده نو هغه روايت د آمين بالخفيه ته خو به لار گوري کنه نو لاره يې دا ورته وکتله وايي :

واخطأ شعبة في مواضع من هذا الحديث . ددې حديث په چند مواضعو کې شعبة خطاء شوې دي .

اول ځاى چې شعبة ورکې خطاء شوې دي .

فقال عن حجر ابي العنبس وانما هو حجر بن عنبس . امام بخاري وايي دې خطاء شوي دي .

انما حجر ابن العنبس . دا حجر ابن العنبس دي أبو العنبس نه دي .

گوره وايي د سفيان په مقابله کې شعبة کمزورې شو کنه په سند کې وايي ددې سرې نوم کې غلطي وکړه دا حجر ابي العنبس نه دي دا ابن العنبس دي نو شعبة د راوي نوم صحيح

واخیسته خو کنیه یې ورته غلطه کړه د هغه کنیه ابن عنبس دی ده ترې کنیه ابو العنبس جوړه کړه دا اوس د شعبة حافظه د سفیان په مقابله کې کمزورې ثابتوي یوه یې وایي دا غلطي کړې ده.

ویکنی ابا السکن. د ده کنیه أبا السکن ده.

دویم: وزاد فیه عن علقمة بن وائل.

سند داسې دي:

سمعت علقمة یحدث عن وائل.

نو دویم اعتراض دا وایي دې سند کې د حجر او د وائل په مینځ کې د علقمة واسطه نشته ده په کې دا واسطه زیاته کړه دا یې بله غلطي ده.

وانما هو عن حجر بن عنبس عن وائل بن حجر. سند داسې دي.

دریم: اصل عبارت دي:

وخفض بها صوته.

ده خفض بها صوته ویلې دي اصل عبارت دي: ومد بها صوته.

الجواب: عمدة القاري شرح صحیح البخاري جلد ۹ صفحه ۲۳۰ کې ددې اعتراض نه جواب کوي:

قلت تخطئته مثل شعبة خطأ. امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ چې مثل د شعبة ته خطاء وایي دا په خپله خطائي ده هغه دده له اساتذه وو نه دي د شیخ شیخ یې دي او دې هغه ته خطاء وایي:

وکیف وهو امیر المؤمنین في الحدیث.

او که ته دا اعتراض کوي چې د حجر ابن عنبس په ځای باندې ابو العنبس ویلې دي نو دا قول چې هو حجر بن العنبس ولیس بأبي العنبس لیس کما قاله. داسې نه ده.

بل هو أبو العنبس حجر بن العنبس.

دده کنیې دوه وې دې ابن العنبس هم دي ابو العنبس هم دي اباالسکن هم دي نو ډیر خلک کله د ځوي په نوم یادیږي کله د پلار په نوم یادیږي ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د پلار په نوم

یادیږي ابو حنیفةد اولاد په نوم یادیږي نو دلته دده ځوي هم عنبس نومیده نو ځان یې مکنی کړو په ابا العنبس او دده پلار هم عنبس نومیده نو ځان یې مکنی کړو په ابن عنبس سره نو سړي خو یو دي کنه .

سفیان راغې وي ویل چې ما ته حدیث بیان کړې دي سلمةد چا نه یې بیان کړې دي د حجر ابن عنبس نه شعبة راغې چې ما ته حدیث سلمة بیان کړو د حجر ابو العنبس نه .

نو څه اعتراض په کې وشو خو یو سړي دي کنه ابو العنبس یې هم کنیه ده ابن العنبس یې هم کنیه ده .

**وجزم به ابن حبان في الثقات فقال کنیته کاسم ابیه .**

دده کنیه په شان د نوم د پلار دده وه او دا خبره چې امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ وایي چې دا مکنی په ابا السکن دي .

**لا ینافي ان تکون کنیته ایضاً ابا العنبس .**

دا منافي ددې نه ده چې ګنې بله کنیه یې نشته.

**لانه لا مانع ان یکون لشخص کنیتان .**

دویم اعتراض یې دا کړې چې علقمة په مینځ د حجر او د وائل کې زیادت کړې علقمة نشته دي په سند کې :

**وقوله وزاد فیه علقمة لا یضر لان الزیادة من الثقة مقبولة .** هیڅ تاوان نه کوي ځکه دا زیادت د ثقه نه دي او مقبول دي .

**ولا سیما من مثل شعبة .** شعبه په شکل زیادت چې وکړي بیا او بل دا چې مخکې ما ورته اشاره وکړه دا حُجر ابي العنبس چې دې بالذات هم د وائل بن حجر نه اوریدلې دي او د علقمة عن وائل یې هم اوریدلې دي اول وخت کې د وائل بن حجر له ځوي نه اوریدلې وه هغه له پلار نه حدیث بیانول څه زمن بعد چې دده ملاقات یې له پلار سره وشو د پلار نه یې هم واوریدل .

نو تاسو سوچ وکړي چې شعبةد سفیان په مقابله کې څومره احفظ شو شعبة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دواړه سند بیانوي چې مونږ ته سلمة دا حدیث دوه شکله بیان کړو ، عن علقمة عن وائل یې

هم بيان كړې دي او ډارک د وائل نه يې هم بيان كړې دي هغه دواړه روايت پيش كوي او سفيان دا يو پيش كوي چې كوم د وائل نه ډارک بدون د واسطې د علقمة نه دي او كوم چې واسطه د علقمة ده هغه نه پيش كوي خو هغه احفظ دي چې ټول سند ونه ورته ياد وه لكه مخكې روايت كې ورته ما اشارهو كړه :

يحدث عن وايل او سمعه حجر من وائل . خپله يې هم اوريدلې دي او د طبراني عبارت هم دي .

ثلاثتهم عن شعبة بهذا الاسناد و فيها قال حُجر و قد سمعت من وائل . ما د وائل نه خپله هم اوريدلې دي نو چې خپله يې هم اوريدلې دي اوس چې هر كله شعبة واسطه د علقمة راوړه دا څه زيادت خو نه دي او كه وي هم نو د ثقه نه زيادت دي .

هر چې دريم اعتراض دي چې ده وخفض بها صوته ويلې دي يا اخفى بها صوته يې ويلې دي او دا په حقيقت كې ومد بها صوته دي .

وقال وخفض بها صوته وانما هو ومد بها صوته يؤيد ما رواه الدار قطني عن وائل بن حجر .

مونږ د وائل بن حجر د دار قطني بل سند لرو هغې كې هم دا دى .

قال صليت مع رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فسمعته حين قال غير المغضوب عليهم ولا الضالين قال آمين فاخفى بها صوته .

نو د غلته سند كې چې د خفض بها صوته دا معنى د اخفى سره لږي كنه يو ه معنى ده د دواړو او كه ته وايي چې دا مد بها صوته دي او د خفض ويلې غلطي يې كړې ده نو زه به وايمه چې دا خفض بها صوته دي سفيان چې مدبها صوته ويلې غلطي يې كړې ده نو دا به انصاف وي چې دواړه دي ثقه ګان وي دواړه دې تقريباً په مثابت واحد كې وي عند المحدثين او يو دې يو متن او وايي ته دې د هغه متن ددې بل راوي د متن د لاسه ردوي بيا نو چې ردوي يې زه به دغه متن د هغې متن په وجه رد كړم يو سند دي يو راوي دي يو حديث دي ته چې د خفض بها صوته رد كوي له وجې د مد بها صوته د سفيان د روايت نه زه به دا رد كړم له وجې د شعبة د

روايت نه ييا بـه څـه كوي دا خو انصاف تـه دي لا اقل دومره بـه ويلي شي چي دا حديث مـضطرب دي تعـارض دي پـه دې مينځ كې دده روايـت د شعبة مذهب د حنفيت ثابتوي او روايـت د سفيان مـذهب د حنبليت او شافعيت ثابتوي نو دا حديث لـه درجې د استدلال د جانبينو نه ساقط شو نه به پرې هغوي استدلال كولې شي نه به يې پرې مونږ. كولې شو كه مونږ پرې استدلال كوو دوي به مد بها صوته راته پيش كړي كه دوي پرې استدلال كوي مونږ په ورته خفض بها صوته پيش كوو.

البته مونږ لا دا ويلې شو چې روايت د مد بها صوته كې مونږ سره داسې دلائل شته دي چې روايت د خفض سره جمعه شي هغه دوه تاويله دي يو تاويل دا دی چې د **مد بها صوته** معنى زه داسې نه كومه چې آوازيې پرې اوچت كړو زه د مد بها صوته معنى دا كومه چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په دې همزه باندې مَدّ ادا كړو پټ يې ويلي كه جهر يې ويلي دې نه ساكت دي **مد بها** صوته معنى داده آمين داسې بالمد يې ويلي په مد سره يې ادا كړو د جهر معنى نه كومـه تر څو چې روايت د سفيان ك روايت د شعبة سره موافق او خيژي پټ لوستلې دي خو بالمد يې لوستلې دي **مد بها صوته** آوازيې پرې راښكلو يعنې دغه همزه چې كومه ده دا يې بالمد ولوستله دا لوستل اوس دا تاويل چې په مد بها صوته كې چې جهر يې كړې دي يا **مد بها** **صوته** كې همزه بالمد يې لوستلې ده دا همزه بالمد لوستل د روايت د شعبة سره هيڅ منافات نه لري پټ يې لوستلې دي خو بالمد يې لوستلې دي زه دا تاويل لرم ولې تاسره به په روايت د **خفض بها صوته** كې څه تاويل پاتې شي ته هم په دې كې تاويل پيدا كړه.

دويمه داده كه مد بها صوته كې جهر ومنم چې داد جهر معنى ده نو زه په كې دا تاويل لرم چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دې د پاره دا كار كړې وي **تعليماً للامة** ولې زه به حديث پيش كړمه چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به دوه سكتې كولې يو د الله اكبر سره سكته وه بيا به يې **الحمد** شروع كړه بل د **ولا الضالين** سره به يې سكته يې خفيفه كوله لږ به غلي كيده نو دغه وخت كې چې دا لږ غلي كيده نو دا څه شي ته غلي كيده مونږ وايو دلته يې امين پټ لوستلې دي نو حالت يې اكثري او عمل د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په دغه وخت كې چپ والي دي سكته يې خفيفه ده دا چې كوم روايات

شوې دي چې آوازېې رابښکلي دي تعليماً للامة لکه د بخاري شريف په حديث کې راځي نبي عَلَيْهِ السَّلَام به د ماسپښين په لمانځه کې کله په قراءت باندې څه حصه کې جهر وکړو اوس د ماسپښين په لمانځه کې جهر هيڅ مذهب هم نه دي او د هيچا مذهب هم نه دي ځکه د ماسپښين لمونځ چې کوم دي هغه پټ لوستل په کار دي .

او د بخاري په حديث کې نبي عَلَيْهِ السَّلَام پرې جهر کړې دي اوس هلته به څه تاويل کوي سوا ددې تاويل نه چې كان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يعلمنا ، صحابه وايي مونږ ته يې تعليم راکړو چې زه په دغه مونځ کې څه قراءت لولم چې تاسو پوه شي که ټوله زندګي حيات د نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې د ولا الضالين سره سکته شوې وايي نو بيا به چا ته معلومه نه وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام دې سکته کې څه لولي .

فلهذا کله يې پرې جهر کړې دي تعليماً للامة نو ځه د مد بها صوته معنی که د جهر شي تاويل د تعليم لرم ولې ته د خفض بها صوته څه تاويل کوي نو مونږ د جمعې د روايتينو لپاره د سفيان او شعبه مينځ کې د تطبيق دوه لارې لرو خو مقابل جانب د شعبة روايت د سفيان سره په جمعه کې هيڅ لاره نه لري سوا ددې نه چې بې ځايه اعتراضات يې وکړل چې د حجر ابا العنبس ويلې دي ويلې دې وي کنه همغه حجر دي مکنی په ابا العنبس دي او همغه ابن العنبس دي هيڅ خلل نشته دي سوا ددې نه چې سند کې علقمة زيات کړو له دواړو نه يې اوريدلې دي کنه زيادت دې يې کړي وي زيادت د ثقه مقبول دي سوا ددې نه چې مد بها صوته راغلې دي ده چې خفض ويلې هغه شاذ شو شاذ خو هغې ته ويل کيږي چې روايت د ثقه مخالف د اوثق نه راشي او شعبة سفيان دواړه اوثقان دي احفظ دي نو په دغه وخت کې چې د يو روايت د بل مخالف خيژي نو دې ته خو شاذ نه ويل کيږي کنه شاذ خو هغه وي چې يو ثقه دي بل اوثق دي دغه شاذ دا متن د اوثق نه مخالف راشي نو دا خو دواړه اوثق دي په اتفاق د محدثينو باندې که خامخا يو متعصب تعصب کوي نو په سند ددوي کې سفيان دي او سفيان يو معروف مدلس دي او ټول روايات د سفيان چې په دغه ځای کې راغلې دي نو هغه د سلمة بن کهيل نه عنعن کړې ده او عنعن د مدلس چې کومه ده دا خو وهابيان په سختي سره ردوي چې ردوي يې نو د سفيان عنعن دلته څنګه قبوله شوه او هر چې شعبة دي که څوک

وايي چې شعبة هم عنعن کړي عن سلمة يې ويلي دي شعبة ويلي چې د آسمان نه راپريوځم دا به قبوله کړم خو تدليس به ونه کړمه شعبه دا تدليس دومره بد ګڼلو جرم يې ګڼلو حتی چې ډيرو ګناهونو نه يې تدليس ته غټه ګناه ويلې دا يې ډير بد ګڼلو نو شعبه مدلس نه دي او هر چې سفيان دي مدلس دي او عنعن د مدلس عند کم مقبوله نه ده بيا صحيح حديث په امين بالجهر کې پيدا کړي دا په دغه معروف حديث باندې چې دوي هم ترې استدلال کوي او زمونږ علماو هم ترې استدلال کړې دي علامه نيموي رَحِمَهُ اللهُ يو منصف انسان دي تحقيق کوي خو ډير منصفانه انداز کې حديث د وائل بن حجر را اخلي رواه احمد والترمذي وابي داؤد الطيالسي والدار قطني والحاکم و آخرون واسناده صحيح وفي متنه اضطراب .

سند يې صحيح دي خو متن اضطراب لري هغه د سفيان او د شعبة اضطراب دي چې دا مد بها صوته شو که اخفی بها صوته شو نو ددغه اضطراب دفع يا په هغه طريقينو وکړه چې مونږ درته ذکر کړيا لا اقل حديث د استدلال د جانبينو نه ساقط شو او بيا په صفحه ۱۲٦ کې علامه نيموي رَحِمَهُ اللهُ د علماو اقوال د شعبة متعلق را اخلي :

قال يحيى بن السعيد القطان ليس احد احب الي من شعبة .

هغه وايي ما ته شعبه نه زيات محبوب انسان بل په حديثو کې نشته دي .

امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ وايي په العلل کې يحيى بن معين نه علي مديني وايي چې : ما يحيى بن معين ته وويل :

ايهما کان احفظ للاحاديث الطوال . په دې سفيان او شعبة کې لوي حافظ د حديثو طوالو کوم يو وه .

قال کان شعبة أمر فيها . يحيى بن معين را ته ويلي چې اوږدو سندونو او متنونو کې شعبة چې وه هغه ډير تيز رفتاره وه يعنې هغه به ډير ښکلي سند او متن بيانولو په مقابل د سفيان کې .

وقال يحيى بن السعيد القطان وکان الشعبة اعلم بالرجال فلان عن فلان وکان سفيان صاحب الابواب .

خو مره ښکلي قول يې کړې دي د سند په لحاظ سره که وکتل شي شعبة د سفيان نه مقدم دي او د فقهې په لحاظ که وکتل شي نو سفيان پرې مقدم دي ځکه سفيان په فقه کې د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ څه اخذ لرلو يعني سفيان د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ رأيه ته مائله وه نو فقاهت او د باب ترجمه او سنن چې کوم بابونه وضعه کيږي وايي په هغې کې سفيان مقدم وه او هر چې سند په لحاظ او د حفظ په لحاظ بيا شعبة مقدم وه دلته خو مسئله د سند ده او د متن ده او بله دا چې :

**شعبة لم يكن يدلس لا عن الضعفاء ولا عن الثقات .** ده به بالکل تدليس نه کولو .

او ذهبي په تذکرة الحفاظ کې وايي :

**قال ابو زيد الهروي سمعت شعبة يقول لان اقع من السماء فانقطع احب الي من ان ادلس**

چې د آسمان نه راپريوځم او ټوټه شم دا به خوښه کړم خو تدليس نه خوښوم .

سره د دې نه چې مونږ سره د شعبة په روايت کې بعضې ځايونو کې دا الفاظ دي :

**اخبرني سلمة بن كهيل .** مدلس هم نه دي څه الفاظ د اخبار لري عنعن هم نه ده په بعضې سندونو کې لکه روايت د ابي داؤد الطيالسي کې :

**واما الثوري فكان ربما يدلس وقد عنعن .** هغه مدلس وه او عنعن يې کړې ده .

امام ذهبي په الميزان کې وايي :

**سفيان بن السعيد الحجة الثبت متفق عليه مع أنه كان يدلس عن الضعفاء ويكتب عن الكذابين .**

او حافظ ابن حجر په تقريب کې وايي :

**وكان ربما يدلس .** ده به کله کله تدليس کولو .

نو دغې روايت ته که وکتلې شي يو د سفيان قول ته تاويل پيدا شو چې تعليماً دې شوې وي نه دا چې تشريعاً د دائم لپاره عمل دي .

دويم دا چې مد دې په راښکلو د همزې معنی باندې شي چې همزه يې آمين سره وويلې شي .

دريم دا چې د سند په لحاظ سره وکتلې شي شعبة غير مدلس دي عنعن يې که کړې هم ده په بعضې رواياتو د ابي داؤد کې اخبرني ويلې شوې دي .

او هر چې روايت د سفيان ېو له عنعن ده او دې ده مدلس او عنعن د مدلس مقبول نه وي نو که دغې ته وکتلې شي روايت د سفيان په مقابل د شعبة کې څنگه قبليږي .

(۲) دويم روايت صحيح البخاري جلد ۱ صفحه ۱۹۸ کې را اخيستې :

حدثنا عبد الله بن مسلمة عن مالك عن سمي مولى ابي بكر عن ابي صالح عن ابي هريرة ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال اذا قال الامام غير المغضوب عليهم ولا الضالين فقولوا آمين .

استدلال څنگه دي علامه نيموي وايي چې قولوا آمين يې معلق کړو تر قراءت د ولا الضالين که امام جهر په آمين کولې نو داسې ويل په کار وه چې امام ووايي ولا الضالين آمين فقولوا آمين ولا الضالين آمين پورې تعليق نه ورکوي ولا الضالين پورې تعليق ورکوي نو معلوميږي چې د امام د ولا الضالين سره آمين په کار دي او که امام جهر په آمين کولې نو تعليق تر آمين په کار وه چې امام آمين ووايي نو تاسو آمين ووايي :

فانه من وافق قوله قول الملائكة غفر له ما تقدم من ذنبه .

امين الله وهابي چې ځان ته بشاوري وايي څه وخت مخکې يوه وړه رساله خوره کړې وه په هغې کې دې حديث نه استدلال کړې وه د آمين د جهر دا حديث چې په کومو ورقاتو د بخاري کې ذکر دي پاکستان چاپ د صفحې په اول کې نو دا صفحه آخر ته ورسوي سند يې په همدغه صفحه دي او حديث په دا بله صفحه کې مذکور دي که دې نه جهر ثابتيږي نو هغې کې دا الفاظ دي :

اذا قال الامام سمع الله لمن حمده فقولوا ربنا ولك الحمد . امام چې سمع الله لمن حمده ووايي نو تاسو ربنا ولك الحمد ووايي .

نو اوس به دا په خفي وايي او که په جهر ، دوي څه وايي ربنا ولک الحمد په زوره وايي که پټ به يې وايي .

همدغه شان الفاظ دي چې امام ولا الضالين ووايي فقولوا آمين تاسو آمين ووايي له دې نه يې جهر ثابت کړې دا خو تعليق د آمين د مقتدي تر ولا الضالين ورکه خو جهر د امام د آمين پاتې نه شو په کې کنه دا خو دليل د خفيه دي د آمين د جهر خو نه دي نو بشاوري دې حديث نه استدلال کړې که دې نه استدلال کوي چې قولوا آمين آمين ووايي نو په زوره يې ووايي نو جهر خو نه دي راغلې نو که خامخا ضد کوي نو مونږ به د بخاري بل حديث پيش کړو چې :

اذا قال الامام سمع الله لمن حمده فقولوا ربنا ولك الحمد ، او س به مقتديان په ربنا ولک الحمد کې جهر کوي بيا او داد هيچا مذهب هم نه دي .

بيا يې ترغيباتو د جهري امين کې دا حديث پيش کړې وه :

من وافق قوله قول الملائكة غفر له ماتقدم من ذنبه .

نو محمد آمين صفدر او کاروي ددې په مقابله کې بنه خواري کړې ده رسائل د محمد آمين دري جلدونو کې شائع دي بنه بنائسته يې ددغې خاصو مسائلو لپاره د تراويحو لپاره او د طلاق ثلاثه لپاره دا چند مسائل چې معروف دي دې لپاره پوره کار ورکوي نو هغه په دغه ځاى کې يو ضحك هم دوي پسې کړې دي وايي عجيبه ده چې دا حديث د :

من وافق قوله قول الملائكة غفر له ماتقدم من ذنبه .

نه وايي وهابيان د آمين بالجهر استدلال کوي او حال وايي دادې چې تاسو سوچ وکړي چې د وهابيانو آمين هيڅ کله د فرشتو د آمين سره نه موافق کيږي نه په موضع کې نه په کيفيت کې په موضع کې ولې نه موافق کيږي دوي په جهر مونځونو او خفيه کې مقتدي لره فاتحه لازمه ګڼي خو دا لازمه نه ده چې هر مقتدي به تکبير تحريمه نيولې وي کيدې شي امام فاتحه وسط ته رسولې وي او مقتدي راشي چې اودريږي نو دوي وايي چې دا مقتدي به فاتحه وايي کله چې امام ولا الضالين وويل او مقتدي يې په فاتحه لګيا دي موافقت په موضع کې راغې رانغې ځکه امام آمين وايي او مقتدي په فاتحه کې لګيا دي او س فرشتې خو د مقتدي آمين سره آمين نه وايي هغه خو د امام د آمين سره آمين وايي چې هغه آمين ويلې نو فرشتې آمين وايي .

نو د وهابیانو دغه آمین کله د فرشتو د آمین سره موافق شو په موضع کې دا خو هلته فاتحه باندې لګیا دي ولو بالفرض که دې مخکې هم رارسیدلې وي نو دا لازمه نه ده بعضې سپین ږیري سست وي امام پسې فاتحه نه شي رسولې هغه تیز وي او دې سست وي نو د هغه وهابي چې سست وي په مانځه کې او بوډا دې د هغه آمین هم د فرشتو د امین موافق و نه ختو دا خو په موضع کې نه شو .

او هر چې په کیفیت کې دي نو په کیفیت کې خو کله هم موافق نه دې ځکه وایي فرشتې د امام سره آمین وایي خو مونږ وانه وریده ځکه پټ یې وایي او وهابیان یې په جهر وایي وایي دا کیفیت کې مخالفت وای د وهابیانو آمین کله هم د فرشتو د آمین موافق نه خیژي نه په موضع کې نه په کیفیت کې او سمه خبره یې کړې ده مونږ د امام سره آمین وایو که مونږ وروسته هم راشو فاتحه لازمه نه ګڼو چې امام ولا الضالین وایي مونږ متصل آمین وایو فرشتې یې پټ وایي مونږ یې پټ وایو فرشتې یې د امام په معیت کې وایي مونږ یې هم د امام په معیت کې وایو .

(۳) دریم روایت : صحیح ابن خزیمة جلد ۳ صفحه ۳۵ :

**حدثنا سعید حدثنا قتادة عن الحسن ان سمرة بن جندب وعمران ابن حصین .**

دلته شعیب الأرنووط او الباني لګیدلې دي **عن الحسن ان سمرة** نو څه وایي وایي

**رجاله رجال الصحیحن** سند کې څه خبره نشته ثقات دي **غیر ان الحسن مدلس وقد عنعن .**

حسن بصري مدلس دی او عنعن یې کړې ده عنعن د مدلس قبوله نه ده او بیا یې آمین بالجهر کې د سفیان عنعن خپله پیش کوي .

مسئله د اسماء الرجال کې سخت تعصب شوې دي او روان دي په دې کې شغل مه کوي دې کې مه کوزیږئ داسې احادیثو ته به په دغې واهیاتو باندې لتې ورکړې چې بیا به حیران یې د خیتې به تابع یې بیا چې ستا کوم نظر دي هغه حدیث به قوي ثابت کړي او چې ستا د رایې مخالف دي ضعیف به یې ثابت کړي .

دا څه داسې په حقیقت بنا اقوال نه دي چې څوک څنګه لګیدلې هغسې کړي او س حسن بصري چې امام شافعي غوندې انسان یې مراسل قبلوي وایي که ده داسې ویلي چې

قال رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او ده سره يې سندونه ويلي قبول دي ما ته نو يو اځې په عنعن باندې دې رد كول چې ده دلته عن ويلي دي .

نو حسن بصري رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي :

ان سمرة بن جندب وعمران ابن حصين تذاكرا . خپلو کې په خبرو وه .

فحدث سمرة . سمرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث بيان كړو .

انه حفظ عن رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . چې ده ياد كړي د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه .

سكتتين . دوه سكتې .

سكتة . يوه سكته .

اذا كبر . چې كله به يې تكبير ويلو .

وسكتة . او بله سكته :

اذا فرغ من قراءته عند ركوعه .

(۴) ځلورم روايت مسند احمد بن حنبل جلد ۵ صفحه ۲۲ :

حدثنا عبد الله حدثني ابي حدثنا هشيم اخبرنا منصور ويونس عن الحسن بن سمرة بن جندب انه كان اذا صلى بهم سكت سكتتين . دوه سكتې به يې كولې .

اذا افتتح الصلاة واذا قال ولا الضالين سكت ايضاً هُنَيَّةً . لږ به غلي شو .

فانكروا ذلك عليه . دوي پرې انكار وكړو .

فكتب الى ابي بن كعب . خط يې وليكه ابي بن كعب له چې دې كې ما سره دا خلك لا نجه كوي ستا څه رايه ده .

فكتب اليهما أُبَي . ابي بن كعب خط راوليږه .

ان الامر كما صنع سمرة . حضرت سمرة بن جندب چې سكتې كړي دغه شان د نبي عَلَيْهِ السَّلَام طرز او طريق وه .

دا حديث د سند په لحاظ سره صحيح دي د غه سکته کې اختلاف دي په حرمينو کې دا سکتې کيږي آمين باندې جهر هم کيږي نو نه پوهيږم چې هغوي به له دغې سکتې نه څه تعبير اخلي کيدې شي هغه خلک چې قائلين د قراءت خلف الامام دي هغوي به وايي دا سکته دې د پاره کول په کار دي چې کوم بوډا يا روستې راغلې انسان هغه ما پسې فاتحه کې نه وي رارسيدلې چې راورسيږي نو زه وايم که په دې فکر باندې وي نو دا خو انتظار د امام للمأموم شو نو دا خو بيا مکروه دي امام مقتدي ته څنګه انتظار کوي يو سړي را روان دي ته وايي چې لږ انتظار کوم رکوع اوږدومه چې دې راسره رکوع ونيسي دا خو نه دي کول په کار.

زما ذهن ته دا خبره راځي ددوي په کتبو کې ما دا خبره نه ده ليدلې خو زما ذهن ته دويم تاويل دا راځي چې دوي دا سکته کوي نو کيدې شي چې ذا مقصد يې وي په دا سکته کې چې دا فاتحه ولوستلې شوه دې کې تفکر په کار دي وه خو لوستل شوه خو په دې آيتونو کې يو تفکر په کار دي دا بيا بنائسته نيت دي بيا چې قراءت وشي بله سکته وکړي حرمينو کې دا رواج ده غلي ولاړ وي آمين وويلې شي بيا غلي وي بيا شروع شي نو دا سکته اوس هم هلته رواج ده.

خو احناف وايي چې دا سکته د انتظار د مقتدي لپاره نه ده دا سکته د کوم بل مقصد د پاره نه ده همدغه سکته کې آمين لوستل کيدلو دا لږه سکته وه غلي به شو د آمين د پاره.

**(۵) پنځم روايت: المعجم الکبير جلد ۸ صفحه ۱۹۵ دې کې د صحابه کرامو رايي دي:**

**حدثنا محمد بن عبد الله الحضرمي حدثنا احمد بن يونس حدثنا ابو بکر بن عياش عن ابي سعد البقال عن ابي وائل قال کان علي وبن مسعود.** حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ.

**لا يجهران بسم الله الرحمن الرحيم.** دوي به په بسم الله باندې په مانځه کې جهر نه کولو.

**ولا بالتعوذ.** اعوذ بالله باندې به يې جهر نه کولو.

**ولا بآمين.** په آمين به هم دوي جهر نه کولو.

الانصاف لابن عبد البر همدغه روايت په دې الفاظو ذکر کوي جلد ۱ صفحه ۳۷:

عن ابراهيم عن علقمة والاسود عن عبدالله ابن مسعود قال ثلاث يخفيهن الامام.

دري څيزونه دي امام به يې پټ وايي:

الاستعاذة وبسم الله الرحمن الرحيم وآمين.

داد عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه فتوى شوه او پاس حديث د عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه عمل شو هغه يې فعلي روايت شو او دا يې قولي فتوى شوه.

(٦) شپږم روايت: شرح معاني الآثار جلد ١ صفحه ٢٠٣:

حدثنا سليمان بن شعيب الكيساني قال حدثنا علي بن معبد قال حدثنا ابوبكر بن عياش عن ابي سعيد عن ابي وائل قال كان عمر وعلي رضي الله عنهما لا يجهران ببسم الله الرحمن الرحيم ولا بالتعوذ ولا بالتأمين.

حضرت عمر فاروق او حضرت علي المرتضى رضي الله عنهما دوي به په دې جهر نه کولو.

(٧) اووم روايت: مصنف ابن ابي شيبة جلد ٢ صفحه ٥٣٦:

حدثنا وكيع عن سفيان عن منصور عن ابراهيم النخعي قال خمس يخفيهن الامام.

پنځه څيزونه به امام پټ وايي.

الاستعاذة، وسبحانك اللهم وبحمدك، وبسم الله الرحمن الرحيم وآمين واللهم ربنا لك الحمد.

همدغه روايت مصنف عبدالرزاق جلد ٢ صفحه ٨٧ کې هم ذکر کړې دي.

## ادله د مثبتينو د آمين بالجهر:

(١) سنن الترمذي جلد ٢ صفحه ٢٧، هماغه حديث ذکر دي:

قالا حدثنا سفيان عن سلمة بن كهيل عن حجر بن عنبس عن وائل بن حجر قال سمعت النبي صلى الله عليه وسلم قرأ غير المغضوب عليهم ولا الضالين فقال آمين ومد بها صوته.

هماغه سند دي، هماغه الفاظ دي فقط هلته خفض بها صوته دلته مد بها صوته دي.

قال وفي الباب عن علي وابي هريرة. مرفوع حديث دا دوه پيش کوي.

قال ابو عيسى حديث وائل بن حجر حديث حسن. صحيح يې ورته ځکه ونه ويلو چې متني اضطراب دي په کې په دې حديث بحث مخکې شوی دی چې دا متعارض دي.

(۲) دويم سنن الدار قطني جلد ۲ صفحه ۱۳۴:

حدثنا محمد بن اسماعيل الفارسي حدثنا يحيى بن عثمان بن صالح حدثنا اسحاق بن ابراهيم حدثني عمرو بن الحارث حدثني عبدالله بن سالم عن الزبيدي اخبرني الزهري عن أبي سلمة وسعيد عن ابي هريرة رضي الله عنه كان النبي صلى الله عليه وسلم اذا فرغ من قراءة أم القرآن رفع صوته وقال آمين. آواز به یې اوچت کړو آمين به یې وويل.

مخکې ترمذي ويلي:

وفي الباب عن علي وابي هريرة. په باب کې د ابو هريرة رضي الله عنه روايت دی دا هغه د ابو هريرة رضي الله عنه روايت شو.

جواب دادی چې ددې په سند کې اسحاق ابن ابراهيم راغلي او هغه ضعيف دي.

اسحاق بن ابراهيم بن العلاء بن الضحاك بن المهاجر الزبيدي ابو يعقوب بن ابي اسحاق الحمصي وهو اسحاق بن زبريق.

رتبه یې په نزد ابن حجر صدوق يهم كثيراً، ډير زيات به خطاء کيدو وهم کثير چې چا ته پيښيږي دې ته سوء حافظه ويل کيږي د هغه حديث يا ضعيف وي که تعدد د طروقو رانه شي حديث یې يا ضعيف وي.

تاسو ته مخکې په اصولو کې ما ويلي وه چا ته چې وهم کثير پيښيږي يو ضابط دي يو اضبط دي بل واهم دي، اضبط چې کوم دي اوثق وي د هغه روايت صحيح وي ضابط چې راشي حديث حسن ته را کوز شي واهم چې راشي حديث ضعيف وي يا هغه وخت کې حسن لغيره ګرځي چې تعدد د طروقو راشي.

وأطلق محمد بن عوف انه يكذب. محمد بن عوف نسبت د کذب ورته کړې دي.

نو چې کوم راوي ته نسبت د کذب وشي يا هغه حديث د موضعيت خطره لري.

وقال النسائي: ليس بثقة.

حافظ په تهذيب التهذيب جلد ١ صفحه ٢١٦ کې دده حالات ذكر كوي :

وروي عن الاجري عن ابي داؤد ان محمد بن عوف قال ما اشك ان اسحاق بن زبريق يكذب .
شک نه کوم چې اسحاق بن ابراهيم به دروغ ويل .

(۳) سنن ابن ماجة جلد ١ صفحه ٢٢٨ دا دريم استدلال ددوي دي :

حدثنا محمد بن بشار حدثنا صفوان بن عيسى حدثنا بشر بن رافع عن ابي عبد الله ابن عم ابي هريرة عن ابي هريرة قال ترك الناس التأمين . خلکو آمين پريښودلو .

وكان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اذا قال غير المغضوب عليهم ولا الضالين قال آمين حتى يسمعها أهل الصف الاول . چې اول صف به واوريدلو .

دا ددوي دليل كله دي دوي خو سمې چغې په کې وهي .

فيرتج بها المسجد . چې مسجد به پرې زنګاوه وکړه .

في الزوائد في اسناده ابو عبد الله لايعرف ، يو دا ابن عم ابي هريرة ابي عبد الله چې دي دا مجهول دي ، او دويم په سند کې بشر بن رافع دي ضعفه احمد وقال ابن حبان يروي الموضوعات ، ابن حبان ويلي موضوعي روايات به يې پيش كول .

والحديث رواه ابن حبان في صحيحه سند آخر قال الشيخ الالباني ضعيف . ددې په سند کې بشر راغلې دي .

ابن رافع بشر بن رافع الحارثي ابو الأسباط النجراني امام اهل نجران ومفتيهم . وقال المزي قال عباس الدوري عن يحيى بن معين حاتم بن اسماعيل يروي عن ابي اسباط الحارثي شيخ كوفي وهو ثقة قلت له هو ثقة؟ ثقه دي .

قال يحيى يحدث بمناكير . منکر روايت به يې ويل .

وقال عبد الله بن احمد بن حنبل سألت ابي عن بشر بن رافع فقال ليس بشيء . هيڅ شي هم نه دي ضعيف الحديث دي .

وقال البخاري بشر بن رافع لا يتابع في حديثه . دو مره ضعيف دي چې حديثيې متابعت کې هم نه شي راوړي يعني که بل سند تا سره وي او د بشر ابن رافع روايت راوړي له وجې د تعدد د طروقو نه ، حديث ضعيفه حسن لغيره ته وړي امام بخاري رَحِمَهُ اللَّهُ وايي په بشر ابن رافع حسن لغيره هم نه شي ګرځولې دومره ضعيف دي لا يتابع دغه معنى ده چې مطابعت کې قول نه شي پيش کولې .

وقال الترمذي بشر بن رافع يضعف في الحديث ، وقال النسائي بشر بن رافع ضعيف ، وقال ابو حاتم ابوالاسباط بشر بن رافع الحارثي ضعيف الحديث منكر الحديث . منكر نه دي منكر دي يعني دې ضعيف وه د ثقه ګانو مخالفت به يې کوه احاديثيې منكره يې لرل .

لا نرى له حديثاً قائماً . يو حديث هم روغ ده کې مونږ نه دې پيدا کړي .

وقال الحاكم أبو أحمد الحافظ ابوالاسباط بشر بن رافع الحارثي اليماني ليس بالقوي عندهم .

حافظ ابن حجر په تهذيب التهذيب جلد ١ صفحه ۴۴٩ کې ليکي :

وحكى الحاكم عن الذهلي ايضاً ان اباالاسباط هو بشر بن رافع وقال العقيلي له مناكير و قال الدار قطني منكر الحديث قال ابن عبدالبر في الكنى والاسماء هو ضعيف عندهم منكر الحديث .

وقال في كتاب الانصاف : اتفقوا على انكار حديثه وطرح ما رواه وترك الاحتجاج به لا يختلف علماء الحديث في ذلك .

علماء د حديث دې کې څه اختلاف نه لري چې بشر بن رافع په سند کې راشي نو حديث په احتجاج کې روا نه دي چې پيش شي .

(۴) څلورم : المعجم الكبير للطبراني جلد ١٨ صفحه ٣٣۴ :

حدثنا ابراهيم بن هاشم البغوي حدثنا هدبة بن خالد حدثنا هارون بن موسى النحوي حدثنا اسماعيل بن مسلم عن ابي اسحاق عن ام الحصين عن جدته ام الحصين انها كانت تصلي

خلف النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في صف من النساء فسمعته يقول الحمد لله رب العالمين الرحمن الرحيم مالك يوم الدين بلغ ولا الضالين قال آمين حتى سمعته وانا في صف النساء . .

زه د ښځو په صف کې و مه چې ما آمين واوريده .

ددې حديث په سند کې اسماعيل بن مسلم راغلې دي ضعيف دي .

اسماعيل بن مسلم المكي ابواسحاق البصري مولى حدير من الازد اصله بصري سكن مكة فلكثرة مجاورته بمكة قيل له المكي وكان فقيها مفتيا وقال المزي وقال عمرو بن علي كان يحيى وعبد الرحمن لا يحدثان عن اسماعيل المكي .

دې دواړو به ترې نه حديث نه بيانول .

وقال صالح بن احمد بن حنبل عن علي ابن المديني سمعت يحيى يعني القطان وسُئل عن اسماعيل بن مسلم المكي . چا تپوس د اسماعيل بن مسلم مكي باره کې وکړو .

قيل له كيف كان في اول امره؟ قال لم يزل مخلطاً . خلطيت به پرې راتلو .

قال يحدثنا بالحديث الواحد على ثلاثة ضروب . يو حديث به يې درې قسمه راته بيانوه .

قال محمد بن جعفر ابن الامام عن اسحاق بن ابي اسرائيل سمعت سفيان يقول وذكر اسماعيل بن مسلم فقال كان يخطئ في الحديث جعل يحدث فيخطئ وقال ابو طالب قال احمد بن حنبل اسماعيل بن مسلم المكي منكر الحديث . وقال عبد الله بن احمد بن حنبل سمعت ابي يقول اسماعيل بن مسلم المكي ما روي عن الحسن في القراءات فاما اذا جاء الى مثل عمرو بن دينار واسند بها احاديث مناكير ليس أراه بشيء فكأنه ضعفه . ويسند عن الحسن عن سمرة باحاديث مناكير . وقال عباس الدوري عن يحيى بن معين اسماعيل بن مسلم المكي ليس بشيء . هيڅ شي هم نه دي په آحاديثو کې .

وكذلك قال عثمان بن سعيد الدارمي وابو يعلى الموصلي عن يحيى وقال محمد بن احمد بن البراء وابو العباس القرشي عن علي ابن المديني اسماعيل بن مسلم المكي لايكتب حديثه . حديث ليکل يې هم نه دي په کار .

وقال عمرو بن علي اسماعيل المكي يحدث عنه اهل الكوفة الأعمش واسماعيل بن ابي خالد وجماعة وكان ضعيفاً في الحديث يهم فيه وكان صدوقا يكثر الغلط يحدث عنه من لا ينظر في الرجال. هغه ځوک ترې احاديث بيانوي چې اسماء الرجال کې نظر نه لري.

وقال ابراهيم بن يعقوب السعدي اسماعيل بن مسلم واهي الحديث جداً. وقال ابوزرعة هو بصري سكن مكة ضعيف الحديث. وقال ايضاً سألت ابي عن اسماعيل بن مسلم العبدي فقال هو ضعيف الحديث مختلط قلت له هو احب اليك او عمرو بن عبيد؟

کوم يو درته محبوب دي.

فقال جميعاً ضعيفان. دواړه ضعيف دي.

واسماعيل هو ضعيف الحديث وقال النسائي اسماعيل بن مسلم يروي عن الزهري متروك الحديث وقال في موضع آخر ليس بثقة.

قال الحافظ في تهذيب التهذيب جلد ۱ صفحه ۳۳۲:

وقال ابن حبان كان فصيحاً وهو ضعيف يروي المناكير عن المشاهير ويقلب الاسانيد.

وقال الحربي كان يفتي وفي حديثه شيء. وقال الحاكم عن ابي علي الحافظ ضعيف. وقال البزار ليس بالقوي. وقال ابواحمد الحاكم ليس بالقوي عندهم. وذكره العقيلي والدولابي والساجي وابن الجارود وغيرهم في الضعفاء.

زمونږ کار دا نه دي يقين وکړي دا مې درته بيان کړه دننه په قلب مې تياره راځي ځکه چې دا ما ته ښه کار نه ښکاريږي چې د يو حديث په سند کې د يو راوي د لاسه په هغه جرحه وشي اګر که دومره ائمه وو پرې جرحې کړې دي خو دا ما هغه د دوي جامه واغوسته چې دوي ځاي پر ځاي زمونږ صحيح احاديثو ته ونښلي او دغه شان کار ورسره کوي سره له دې نه دې ته ضعيف خو الباني هم ويلي دي او په اتفاق د محدثينو استدلالات د دوي ضعيف دي سوا د روايت د وائل بن حجر نه هغه اول چې ما پيش کړو هغه مونږ سره هم قوي دي او دوي سره هم قوي دي خو صرف هغې کې معارضه د مد بها صوته د خفض بها صوته کې اضطراب

راغلې دي يا د استدلال نه ساقط دي جانبينو نه او يا دا چې دوي تاويل ددې حديث لري او زمونږ روايت نه ددې تاويل نه شي پيدا کولې دغه طريقه يې آسانه ده او ښه لاره ده.

باقي مسئله د ترجيح ده ددې ټولو رواياتو په کتلو سره او د حضرت علي او عمر فاروق رضي الله عنهما د هغوي په هغه وروستي شرحې سره چې هغوي شپه ورځ د نبي عليه السلام سره جوخت ولاړ وه او ام الحصين په وروسته صف کې او حکايت په ضعيف حديث کې کوي د هغې نه دين جوړ شي يا د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه فقاهت روايت په مقابل د عمر فاروق او حضرت علي او ابن مسعود کې څومره مثابت ولري نو دغه شان خپله هم علماء يې او طالبان يې ددې رواتو خپل يو انداز او جاج تاسو هم اخيستې شي چې روات ددوي څوک دي او روات زمونږ څوک دي او د امام ابو حنيفه رحمه الله سره په دې صحابه وو کې فتوی د چا معي دي په دې کار کې.

نو مسئله صرف د ترجيح پاتې کيږي جانبين دلائل لري جانبين په حق باندې دي هغه جانب کې مذهبين موجود دي گمراه ورته مه وايې پاتې شو کوم چې دلته اهل حديث دي نو اهل حديثو سره زمونږ نزاع دغه نه ده چې تاسو آمين بالجهر ولې ويلي دي او مه دې ته شورش ورکوي په دې اهل حديث خپله گندگي پټوي دوي به زور ورکوي خو تاسو به زور نه ورکوي تاسو ددې په ځای باندې بنيادي مسائل ددوي راټينگوي.

## حکایت :

زمونږ يو طالب په بشام کې په رفع اليدين له اهل حديثو سره مناظره ټاکلي وه د اتوار يکشنبې ورځ يې ټاکلي وه خو دومره دواړه جانبه ناپوهه وه چې د يکشنبې ورځ يې ټاکلي وه خو نه يې په کې وخت معلوم کړې وه چې څو بجې غرما يا ماسپښين او نه يې په کې ځای ښودلي وه چې مناظره به په کوم ځای کې او په څو بجو کيږي ليکل يې هم کړي وه خبره خلاصه وه خو دا يې نه وه ليکلي چې جانبين به کوم ځای ته سره راغونډيږي داسې يو نيمگړي کاريې کړې وه ما پسې هغه زمونږ طالب راغې ما ورته وويل څه دې کړي.

وايي دغسې مناظره مې جوړه کړې ده ما هغه ته هم وويل چې گوره تا ما سره کورس مناظره کړې ده او تا ته بار بار ما ويلي دي چې يو سړي کې دومره غټ گوړ شته دي ته د ستنې سوري ته ولې گوته نيسي دا خو ناپوهي ستا ده په وهابيانو کې غټې غټې سوري دي

مرداري عقيدې يې دي هغه ولې نه راتينګوي چې تا رفع اليدين راتينګ كړې دي دا داسې غټه ګمراهي ده چې ته په دې مناظرې كوي دا محدثين پرې تير شوې آئمه پرې تير شوې ذوق زما دا نه دي چې په دې مناظره وشي او په دې دې احد الجانب آخر ته ګمراه ووايي دا خو ما ته ډيره بې انصافي ښكاري وايي ما خو اوس ټاكلي ده او ما ته يې چيلنج راكړې وه.

ما ورته وويل نو كوم ځاى دې ټاكلي دي څوك دې مناظرين وايي شيخ امين په كې مناظر دي او ابويزيد عبد القاهر په كې معاون دي ما ورته وويل چې تا ورسره څوك مناظرين ليكلي دي وايي ما مولوي عبد الحليم مناظر ټاكلې دي ما ته يې وويل وايي ته مې ورسره معاون ټاكلي يې ما ورته وويل ليكل مو سره كړې خلاص دې وايي خلاص دي ما ورته وويل چې ليكل خلاص دي نو كوم ځاى كې به مناظره كيږي.

وايي دا ځاى خو مونږ نه دي ليكلي ما ورته وويل چې دا سړي خو به درته معلوم وي چې د چا سره دي چې مناظره ټاكلي وايي دا خو په چوک يادګار كې غټ د كان لري معلوم دي راته وهابي دي او زمونږ رشته دار هم دي مړي ژوندي ته چې راشي چيلنجونه د مناظرې راكوي.

ما ورته وويل صحيح ده زه هم هغه وخت سره ګرم وم عمر مې كم وه ما ورته وويل راځه چې ځو رشكه كې ددې وهابي د كان ته ورغلو ورسره كيناستلو، ما ورته وويل چې تا زمونږ دې ملګري ته د مناظرې چلينجونه وركړې دي وايي نه مولانا صاحب ما خو نه دي وركړې ده چيلنج راكړې دي ما ورته وويل يا تا چيلنج وركړې يا ده دركړې تاسو په څه خپلو كې سره ښتي يې وايي په رفع اليدين باندې دې.

طالب ما ته وويل چې دوي وايي چې رفع اليدين څوك نه كوي مونځ يې نه كيږي ما ورته وويل ګوره دا خبره دوي نه كوي وايي نه كوي يې ما هغه ته وويل رښتيا تاسې دا خبره كوي چې څوك رفع اليدين نه كوي كوي د هغه مونځ نه كيږي وايي نه جي دا خبره ما نه ده كړې رفع اليدين نه كول هم سنت دي خو كول يې هم سنت دي نو ما دې خپل طالب ته وكتل چې تا ته خو ما هلته ويلي چې دوي دا خبره د مناظرې ميدان كې بيا نه كوي چې رفع اليدين نه كول بې ديني ده يا يې مونځ نه كيږي دا نه وايي هغه وخت كې بيا تا خو دا ليكل ترې نه دي اخيستې.

ما هغه وهابي ته وويل چې تاسو مناظره تاكلي ده وايي هاو ما ورته وويل چې كله وايي د اتوار يكشنبې په ورځ باندې ما ورته وويل سحر كه مازيگر وايي دا وخت خو مونږ نه دي معلوم كړې ما ورته وويل چې كوم ځاى كې به مناظره كوي وايي ځاى مو هم نه دي معلوم كړې .

ما ورته وويل ناآشنا مناظره ده په كوم ځاى كې به يې كوي بيا مې هغه ته وويل چې رفع اليدين نه كول څه دي وايي سنت دي ما ورته وويل ستا په نزد يې كول څه دي وايي سنت دي نو ما ورته وويل نه كول هم سنت شول او كول هم سنت شول ته خو په دې قائل يې كنه وايي هاو ما ورته وويل چې څوك يې نه كوي ته خو ورته گمراه نه شي ويلې وايي نه چې څوك يې نه كوي گمراه خو نه دي ما ورته وويل چې ستا او دده په مينځ كې خو ډيره معمولي نزاع راغله په نه كولو د سنت ته هم قائل يې او دې هم قائل دي كول سنت دي او كه نه دي په دې كې اختلاف راغئ ته به كولو ته سنت وايي او دې به كولو ته سنت نه وايي دا يوه نزاع راغله خو احد الجانب آخر ته گمراه نه وايي .

ما ورته وويل چې ستا او دده په مينځ كې خو نورې هم ډيرې غټې مسئلې شته دي كنه وايي څه شي ما ورته وويل چې ستا استاذان څه وايي چې تقليد څه شي دي وايي شرك دي سم تيز پرې راغې او ددة استاذان وايي چې تقليد واجب دي اوس كه دا شرك وي او ده ورته واجب ويلې وي ما ورته وويل دا مسلمان دي وايي نه او ما ورته وويل كه دا واجب ثابت شول او تا ورته شرك ويلې وي نو ته مسلمان يې وايي نه .

ما ورته وويل په دې ولې مناظره نه كوي وايي دا خو سمه خبره ده په تقليد به مناظره وكړو ما ورته وويل راوړه كاپي ، كاپي يې راوړه موضوع مې ورته بدله كړه د تقليد موضوع مې ورته وليكله او خپل نوم مې هم ورته وليكلو هر څه شرائط مې ورته وليكل لاندې مې ورته وليكل د وخت او د ځاى تعين ستاسو خوښه ده كه دې وويل چې د شيخ آمين مدرسې ته راشي مونږ به هلته درشو او وخت چې كله تاسو برابر شوې كه بيگا ته تيار يې او كه صبا ته تيار يې چې كله هم تيار يې مونږ تيار يو .

سړي لاړ وايي دا خو تاسو ليكل راكړه او زه به هلته مشوره وكړمه صبا ته به بيا ليكل دركړم صبا مې پسې طالبان وليږل هغه كس نو چې شيخ آمين ورغلي بنه يې دباو كړې دي

چې دا تا ته چا ویلي چې ته دې مسائلو باندې خلکو سره مناظرې وتا که په رفع الیدین خو دوي ډیر نیغ نیغ کیږي تقلید باندې بیا چیره مناظرې ته راځي هغه طالبانو ته یې ویلي وه چې شیخ امین صاحب باجوړ ته تللې دي په دعوت باندې تاسو به یو دوه ورځې ضبر وکړي هغه طالبانو ته ما وویل اوس به یې پریږدي نه داد تینګي نه دي اوس بیا پسې لاړ شي چې لاړ وایي شیخ آمین صاحب خو ویلي ابویزید عبد القاهر سره تاسو دا مناظره جوړه کړې وه هغه سره یې وکړي او زه اوس دې ته تیار نه یم.

نو طالبانو له ماسره مشوره نه وه کړي او په خپل سر خوشي شوي دي غلام الله رحمتي سره هغه مدرس وه قاضي کلي کې هلته پسې ورغلې دي هغه ته ناست دي خط یې ورته مخکې ایښي دي چې دا فلاني کس پیژني هغه بله ورځ مسئله جوړه شوې په رفع الیدین کې د هغه مناظرې وخت نه وه تاکل شوې مسئله تقلید ته بیرته راغله او شیخ آمین وایي چې ابویزید عبد القاهر پسې لاړ شي.

هغه ورته نصیحتونه شروع کړي وه ورته یې ویلي چې زه ییګا شیخ آمین غوبنتي ومه چې داسې چیلنج راغلي ده او وایي ما ته یې ویلي چې دا مناظره ته وکړه وایي ما ورته ویلي چې عبد الحلیم مولانا سره به زه مناظره وکړمه او غلام حضرت مولوي سره به ته مناظره وکړي دا خبره خو مونږ بیګا خلاصه کړې ده دا خط کې د شیخ آمین سره د مولوي غلام حضرت نوم دي چې مناظره به دوي دواړه کوي.

او بیا یې وایي مونږ ته نصیحت شروع کړو چې طالبان یې دا کارونه پریږدي په دې طالبانو کې چې ماو رلیږلي وه یو ورته راشروع شوې وه وایي مولوي صاحب ستاسو په دې حال ژړا راشي چې په خولو څه فتوی لږوي او په منبرونو څه وایي او چې بیا وخت راشي ځان وباسي او حاضریږي نه یوه هفته کیږي مونږ مو ستړي کړي یو کله دوکانونو ته منډې وهو کله مدرسو ته راځو بس هغه ته یې ویلي وه چې شریت وڅکي دا مناظره زه نه شم کولې شیخ آمین پسې لاړ شي.

چې بیرته راغلل ما ورته وویل بد مو کړي چې ابویزید پسې تللې یاستې ستاسو هغه سره څه کار وه مسئله دوکاندار جوړه کړې ده دوکاندار راتینګ کړي چې شیخ آمین راولي او که بل کوم وهابي راولي دوکاندار راتینګ کړي بل چا سره مو څه کار دي ځي بیا لاړ شي

پسې دوکاندار ته مې بیا ولیږل چې ورغلي وه هغه ورته ویلي وه چې زه خو اوس مناظرې ته تیار نه یم ما ته لږ وخت راکړي بیا راشي.

څه وخت وروسته مې بیا طالبان ورولیږل هغه بیا وخت غوښتې وه دا سلسله همداسې شروع څلور پنځه ځل مې طالبان ورولیږل نو دهغه دوکاندار غټه ږیره ده دا لمن او جولي یې ورته نیولې وه چې د خدای لحاظ وکړي ما پرېږدي وایي چې مناظره نه کوي نو په زور خو نه کیږي زه څه وکړم شیخ آمین درسره مناظره نه کوي طالبان چې ما ته راغلل وایي داسې خبره کوي ما ورته وویل چې اوس به یې نه پرېږدي ما ورته وویل چې دا خو ستا کلیوال دي صبا بیا چیلنج درکوي هغه ته به ورشي چې دې خبرو نه به توبه وباسي بیا طالبان ورغلي وه ورته یې ویلي وه چې تا تقلید ته شرک ویلي وه او د امام صاحب په حق کې دې بې آدبي کړې وه او دې خبرو نه به توبه او باسي هغه وایي توبه نه ویستله دې کې وایي شور جوړ شو دا نور دوکانداران هم را غونډ شول وي ویل چې څه خبره ده موږ وایي ورته وویل چې داد امام صاحب په حق کې بې آدبي کړي هغه دوکانداران وایي ټول احناف وه او پرې راغونډ شول وایي سرې چې کله توبه وویستله نو بیا یې وایي خوشي کړو.

نو مقصد مې دادی چې زه نه وایم چې دې څلورو مسئلو کې موږ ادله نه لرو یا موږ مناظره چا سره نه شو کولې دا مطلب مې نه دي خو زه انتهائي د ائمه وو او د محدثینو د بې آدبي نه یرېږمه که دې مسئله باندې تاسو مناظرې وتاکې ضد کې راځي په ضد کې چې راځئ هغه جانب ادله لري اهل حق دي محدثین دي فقهاء دي خپل مذهب به ثابتوي د نورو ائمه وو بې ادبئ به درنه وشي ایمان کې به دې فرق راشي نو دوي خو ګستاخان دي بې آدبه دي په هیڅ هم بند نه دي تاسو خو داسې مه کوي کنه.

پاتې شو هغه مسائل چې ما درته مخکې زیر بحث کړې دي هغلته الحمد لله اربعة ائمه موږ سره دي محدثین موږ سره دي د امت اسلاف موږ سره دي دوي سره هیڅ شي نشته دي په لا نسلم ناست دي چې بس نه منمه او نه دې ثابت هغه راتینګ کړي زیر بحث یې کړي دا مسئلې زیر بحث مه ګرځوي.

دا چند جرحې مې کړې دي د نقل سره الله دې ما ته عفوه وکړي په دې کې زما خپله یوه خبره هم نشته دي چې چا کړې ما را اخیستي دي خو لکه زما زړه پرې خفه کیږي چې باید

حديث ته محمل و لټول شي زمونږ امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ و ګوري په آحاديثو جرحې نه کوي بلکې حديث ته محمل لټوي بنائسته محمل ورته پيدا کړي څو مره روايات د رفعې د آمين بالجهر چې راغلي دي هغې نه امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ تاويل د تعليم کوي چې داد نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دائمي استمراري عمل نه وه بلکې دا يې تعليماً کړې چې هغه خلک پوه شي چې په دې سکته کې څه کول په کار دي پاتې شو دا چې حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ترې نقل کوي چې ما کوم روايات پيش کړل او کوم هغه حديث د وائل بن حجر چې د شعبه روايت دي دا يې عمل اکثري دي مجتهد خو د حديثينو مينځ کې دو مره حق به هم نه لري چې يو محمل پيدا کړي يو تاويل پيدا کړي د حديثو يو صحيح معنى را او باسي دا حق خو هغوي لري چې دا وو ايي کنه نو داد احاديثو مقابله نه ده.

مسئله د آمين بالجهر خلاصه شوه



بسم اللہ الرحمن الرحیم



# علماء احناف

# علماء حق

خادم عالمزیب الحنفی

+923452131285